شعري مجموعه

# وړې سلګۍ

امجد حسان خلجي

شعري مجموعه
وړې سلګۍ
امجد حسان خلجي

## ښاغلی امجد حسان خلجي او د هغهٔ 'وړې سلګۍ'

ښاغلی امجد حسان خلجي د خوانۍ غورځنګ لري، د خوانۍ مینې رنګ لري او په پښتو تنګ لري. د هغهٔ ادبي زیار د ایشار نه کم نه دی، ولې چې هغهٔ په خوانۍ کښې سلګۍ سلګۍ دی، خو حوصله نه بائیلي. جذبې یې ناندي دي او کهٔ په خله یې ساندي دي، خو ګاموته یې د غم د هر پړاو نه وړاندې دي. هغهٔ چې څهٔ لیکلي، که ښکلي یې ستائیلي، که د خان جانان ستمونه او ظلمونه یې غندلي، که خپل دردونه یې ژړلي، هر څهٔ په خپل خپل ځائے خوند رنګ لري. د شعر د لیکلو صلاحیت الله تعالی ورکړے دے او د دې صلاحیت په کار راوستو د پاره هلې ځلې کوي او د خپلې ګرمې وینې په جوش او خپل حساس زړهٔ په زور یې کوي.

د ښاغلي حسان د پېر شعرونه په زړهٔ پورې خواږهٔ او دراندهٔ دي، خو د ځنې شعرونو نه یې د شرابو او میکدې دومره بوئي راځي، لکه چې د یو شرابي شاعر کلام یې په زور زېر لوستے وي او د هغې نه یې تاثر اخیستے وي، ګڼې پخپله داسې نهٔ دے.

سرته ونیلے شو چې ښاغلے حسان به د راتلونکي دور د ادب د آسمان یو ځلنده ستورے وي، خو که لږ د پر ادبي محفلونو، تنقیدي غونډو او ژوره کړي له وخت ورکړي.

وما علینا الا البلاغ

حسین احمد صادق



## ژونده ستا سلګۍ سلګۍ کیسه راته لا یاده ده...

لویه وي او که وړه، سلګۍ سلګۍ وي. پخپل شا ډېر قیامتونه لري، ډېر رنګونه او جهانونه لري. د انساني رویو قیامتونه، د دنیاوي فرېبونو رنګونه او د بې وسۍ، زور و ظلم جهانونه، چېرته چې او سېدل ګران خو وي، ولې امکان یې د ورکېدو نه د لا راپیدا کېدو زیات وي، داسې امکان چې د ماضي د مشاهداتو نه ډېر څه واخلي، د حال په زاړه جاوډي کیفیاتو کې ساه ساه ژوند وکړي او د راتلونکي لپاره د رڼا مناري جګې کړي، ځکه نو سلګۍ، وړه وي که لویه. سیکه نه دي ګڼل پکار

همدغه سلګۍ وه چې د بابا په سترګو کې اوښکه شوه، نو دا ویې کاینات یې آباد کړو او تر دې دمه یې انساني زړونه او جذبې کلکې نیولي ودان یې ساتي. او بیا دا هم یو معجزه ده، چې په دغه آباده دنیا کې د فکر خاوندانو د خپلو سلګو د داېرو او حدونو بهر د تولنې بندېدونکي او نښتونکي ساه ګاني سانده سانده او تېه تېه کړې او پخپل تخلیقي زور او هنر یې بیرې داسې راته تصویرونه جوړ کړل، چې د تاریخ د هر زورور پراوه یې په راتېرولو پخپله ساه ساه کړل، خو ولې هنري او تخلیقي فن یې تر عصري دُرشله په ډېر کمال رارسولي او دا دي د هغه ماتېدونکو ساه ګانو ساندې نن د مینې او امن سندرې دي او انځورونه یې پخپلو رنګونو کې د راوړې واړه سلګو حقیقي ماناوې رایرسېره کوي، څه چې د واړه سلګو د قدر او قیمت په شا د هر ظلم او قیامت وضاحت او ځرګندونه کوي

په تولهٔ پېتنه مینه

**اسرار اتل**

«نور په کتاب کې دننه ولولئ»

اعراف

## د وروکي حسان، وړې سلګۍ

امجد حسان خلجي صیب اګرچې د ژلمیتوب نه هم دوه درې ګاله کشر دے، خو د سوچ ورېښته یې د پېر مخکښې سپین شوي دي. همدغه تدبر کوونکي په لاس د هر دردمره آشنا کوي او پېر تپره تپره چې کله هم حسان صیب څه نوے تخلیق کړے، اګرچې تنې لحاظ سره کمزورے به هم وي، خو زهٔ به ورته ګورم په ځله پاتې کېږم. حسان چې د ژوند په کومه حصه کښې دے، لکه څوګنې دے او هغه هم نېمګړې غوټۍ، خو ادراک یې د انتها دے. ازلي هم پېژني او د سپرلي پېر مزاج هم پوهه دے. اصلي یار هم پېژني او د سپرلي هم، ځکه خو وایي:

په سپرلي کښې ژړېته هېر شولي حسانه
خبر دے رابه شي یو ځلې بېرې خزان بیا

چې د شهارس کلینز ماشوم د شعر په انتخاب کښې هم درد پیدا شي، نو داسې ښکاري چې د کمال ښاپیرۍ یې پېر فکر مښته ده، خو چې کله بیا هم دغه کم سنه سوچ د شعر پېر میدان کښې د سوز واګې ژلاسه کړي، نو صرف دومره به ووایم چې دا اعزاز صرف او صرف پښتو ژبې ته حاصل دے، چې امجد حسان خلجي غوندې شاعران یې زېږولي دي.

په مینه او درنښت

**عادل شاه خلجي**

ادب دوست لندن

# وړې سلګۍ

امجد حسّان خلجي






کتاب نوم: وړې سلګۍ

مصنف: امجد حسّان خلجي

درک: خلجي ټولنه مردان

بریښنا لیک: (0333-9136036)

کمپوزنګ: راضی ګل:(0315-9834199)

ډیزائن: زبیح الله شفاق:(0321-9195220)

دچاپ ځائے: اعراف پرنټرز محله جنګی پیښور

091-2580006 / 2580268

ترجمه

شروع کوم د خدائے پاک په نوم چې بخښونکے اومهربانه دے



**Specil Thanx**

| | |
|---|---|
| **Shah Khalid Nadan** | **Adnan Khilji** |
| **Zubair Shah Khilji** | **Arshid Ali Khilji** |
| **Adil Shah Khilji** | **Zahid Hussain khilji** |
| **Irfan Ali Rustam** | **Umar Zada** |
| **Sir Jamal Khan** | **Jawad Ali** |
| **Inam Ahmad** | **Muhsin Ali** |
| **Aziz Ahmad** | **waqas Ahmad** |
| **M. Tariq Shah Khilji** | **Nigar Khilji** |
| **Abdullah Khilji** | **Ibrar Hussain Fitrat** |
| **Sajjad Ali** | **Ms,R,S City** |
| **Manzoor Ahmad** | **Abbas Ali** |
| **Faisal Khan** | **Bilal Ali Shah** |
| **M.ILyas Khan** | |

Very Very Thanx

خلجی ټولنه

## ......﴿دزړه نه مننه﴾......

د څۀ وئیلو نه مخکښې زما فکر په دې کښې انښتے دے
چې زۀ ستاسوشکر څنګه اداکړم؟

خو بس دا به اوائیم چې حقیقت کښې دوې دپښتو
ادب خواخوږی دې ولی چې دوې ماله هم دخپلو قیمتی
لمحاتونه قیمتی لمحی راکړی او زما کمزورے او وړوکے
فکر ئې په خپل درُون فکررنګ کړو او ما ترې په لږ وخت
کښې ډیر څه زده کړل۔

( ډاکټر همایون هما صاحب ،حسین احمد صادق صاحب
،محمد اسراراتل صاحب،مظهرجاوید صاحب)

خوزه به بس صرف دومره اوائیم چې الله تعالیٰ دې ددوئ
حضراتو په عمر اوعمل کښې سره زمونږ برکت واچوې۔
اوالله دې ددوې دَذهن سطحه نوره هم دادب دپاره وسیع
کړې امین۔

امجد حسآن خلجی



## ......﴿ تړون﴾......

(دخپل مور اوپلار په نوم)

ولې چې دوی زما دپښتو ژبې استادان دی ،چاچې په
"للوللو" اوده کړے یم اود پښتو په تپه ئې پاخولے یم اوچاچې
په" زارزار "قلار کړے یم اوپه "تا تا" ئې خنداولے یم ۔

## ......﴿داستادانو په نوم﴾......

د ابۍ دادا دغیږې نه پس د دوې غیږی له تلے یم ، دمور
غیږ کښې مې پښتو زده کړه او د دوې آغوش کښې مې
دپښتو لیکل ،اوپه تیزطوفان کښې ئې بله ډیوه راوړم
لاتردې منزله چې اوس دادے تاسو ته مخ یم۔

## ......﴿دملګرو په نوم﴾......

کو زه دا اوائیم چې دوست د هر پرهر مرهم دے نو دروغ به
وی بهترین دوست دَژوند سرمایه ده زما په خیال بغیر د

دوست دنیا ورانه جنت نیمګړے. ولې چې د دوستئ په ډاډ زۀ تردې حده راغلم.

## ......﴿دپښتونخوا په نوم﴾......

چې دجنت زمکه یادیږی هرمازیګرئې ګودرونه میرلسونه کوې هر یو چینار ئې دپښتوسندری وائې خندیږی هم ګډیږی هم کله ټپه کله غزل شی. دچینارو، چېنو ورشوګانو او دَ پښتونخوا دګلالو ماشومانو، مشرانو اومزدورانو په نوم

## ......﴿دخلجی ټولنئ په نوم﴾......

دچا د ډاډګیرنې آوازونه چې زما په غو ږو کښې اوړې روړې اوزۀ ئې تردې جوګه کړمه. اوزما حوصلې ئې دومره مضبوطې کړے دی .

دټولو مینه والو په نوم
د شاعرونو او ادبیانو په نوم
د پښتونخوا دزلمو په نوم



## ......﴿ډالۍ﴾......

زۀ داخپلې وړې سلګۍ چې حقیقت کښې زما دتصور دفکر دارمان دامید وړی سلګۍ دې دازه یو خپل خو ږ رور اوملګری ،

**عادل شاه خلجی صاحب**

ته ډالۍ

کوم

چاچې زما په خاورو لوغړنې حوصلې دآسمان په رنګ رنګ کړې . چاچې یو اځې زما سره دشعر اوشاعری په اړخ کښې نه بلکه د ژوند په هراړخ کښې د د حوصلې ډاډګیرنې ماسره اوږه په اوږه روانې دې.

**امجد حسآن خلجی**

## ......﴿د حسان وړې سلګۍ﴾......

زۀ حسان خلجی پيژنم په وړومبئ ملاقات کښې دخپل
کتاب وړې سلګۍ دنمونه مواد راکړل او راته ئې وئيل
چې زۀ دلسم جماعت طالب علم يم ۔ داشعرونه مې ليکئ
دې او اوس ئې چاپ کول غواړم ما په رموز رموز کښې
پوهه کړو چې ادبی ذوق دخدائے پاک عطيه ده اوپه يوه
ژبه کښې شاعر کيدل دهغه اضافی مهربانی ده خوپه
پښتو کښې دشعر نه زيات دنثر ضرورت دې۔ دشاعرې
شوق دې په قابو کښې ساته وړومبې دښه تسلی ادا کړه او
بيائې خپلې تجربے اومشاهدے په شعر کښې بيانولې
۔پوهان وائی چې ځوانان د شوق منې نه وی هغه تسليم
کړې وه چې وړې سلګۍ چاپ کوم نودا ئې د لوستونکو



په وړانده وړومبئ شاعری مجموعه ده۔ له هلک دے
دَوخت سره به ئی شعر کښې پوخ والے هم
پيداشی۔ اوخيالات به ئې نور هم درانه شی۔ په دے خبره
خوشحاله يم چې شعر ئې په وزن کښې دے۔او نور شعری
لوازمات ئې هم پوره دی۔

ډاکټر همايون همؔا صاحب

20/9/2012



## ﴿ښاغلے امجد حسان خلجي اودَ هغهٔ وړې سلگۍ﴾

ښاغلے امجد حسان خلجی دځوانۍ غوځنگ لری دځوانې مینې رنگ لری اوپه پښتو ننگ لری دهغه ادبی زیاردَایشارنه کم نه دے ـولې چې هغه په ځوانۍ کښې سلگۍ سلگۍ ږدے۔ خوحوصله نه بائیلی ـجذبې یې تاندې دی اوکۀ په خله یې ساندې دی۔ خوکامونه یې دَغم دهر پړاؤنه وړاندې دی۔ هغه چې څه لیکلې ـکه ښکلی یې ستائیلی ـ که دَخان یاجانان ستمونه اوظلمونه یې غندلی۔ که خپل دردونه یې ژړلی ـ هرڅۀ په خپل خپل ځائے خوندرنگ لری۔

دشعر دلیکلو صلاحیت الله تعالیٰ ورکړے دے۔ اوددې صلاحیت په کار راوستو دپاره هلې ځلې کوی۔ اودَخپلې گرمې وینی په جوش اوخپل حساس زړۀ په زور یې کوی۔ زما خویې تخلص ډیرخوښ شو ځکه چی دادَ



هغه عظیم صحابی شاعر حضرت حسانؓ بن ثابت سره نسبت لری ـ چاته چې رسول اللهﷺ دعاکړی وه۔ او په مسجد نبوی کښې به یې په خپل ممبر کښینوۀ بیابه یې ورته وفرمائیل چې دکافرانو شاعرانو دشعرونو ځواب ورکړه جبرائیل امین علیه السلام به ستا ملگرتیا کوی۔

دَښاغلی حسّان ډیر شعرونه په زړۀ پوری خوا ږه او درانه دی خودځنې شعرونو نه یې دشرابو اومیکدې دومره بوئی راځی لکه چې دَیو شرابی شاعرکلام ئې په زورزیر لوستے وی اودهغې نه ئې تاثر اخستے وی۔ گنی پخپله داسی نه دی۔

دښاغلی حسّان په شعرونو کښې ځنی فنی اوتخیلاتی خامۍ اوکمزورۍ هم په نظر راځی ـ خو هغه لاځوان د"وړې سلگۍ" یې دشعرونو وړومبۍ ټولگه ده دَشعور اواحساس په دور دَهغۀ ځنې شعرونه دهغۀ نه مشران ښکاری۔ اوپه دې بنیاد مونږ وئیلے شو ـ چې ښاغلے حسان به د راتلونکې دور دَادب دآسمان یو ځلنده

ستـورے وی۔ خو که لږ ډیر ادبی محفلونو ، تنقیدی غونډو
اوزدکړی له وخت وکړی۔

وما علینا الاالبلاغ

حسین احمد صادق

۱۶اکتوبر ۲۰۱۲ء





## ﴿دپښتو ادب یو ځلنده ستورے﴾

دَخـیبـر پـختونخواه په دې آباده سیمه کښې ډیر نوی نوی
شاعرانو اولیکوال دَخپلې مورنۍ ژبې دَ بقا اودَترقۍ دَپاره
خپـل قـلـم اوقـدم پـورته کړے دے۔ اودَپښتو په ادب کښې
ئې ډیر لـوړ اوژور مـقام حاصل کړے دے۔ اوهم دغه رنګ
دمـردان سیـمې سره تعلق لرونکے یونوے اوخائسته ځوان
شاعـر " امـجـد حسّان خلجی ډیر په کم عمر کښې دا لوئ
ګام پـورتـه کـړے دے۔ اودَ"وړې سـلګۍ "په نوم ئې دَخپل
خیـالاتو احساساتو اودَجذباتو اظهار دَشاعرۍ په ژبه کښې
ډیر په عجیبه انداز اومهارت سره کړے دے ۔ چې دهغې په
وئیـلـو سره هـر یـو سړے دَشعر په خوند طبیعت موجونه
وهی۔

امـجـد حسان خلجی دَپښتو ژبې ډیر نازک خیال او
پـه عـېـن خیـال کښې درد مند شاعر دے۔ اودَ نازک خیالۍ
پـــه فـــن کښـــې دَځـــنـــې نـــویـــو اسـتـعـــارو۔تشبیهـــاتـــو
اودَاصطلاحاتو مؤجد دے۔

ـ څه خوضرور شته دے حسانه دَمابنام غېږه کښې
سمه سمتې ده ګډېدل دی نن دَجام غېږه کښې
دلته زۀ خپل سورے څادر ګڼم اوزګار له نه یم!
دَبے وسۍ ارمان به پټ کړم دَناکام غېږه کښې

دَیوشاعر په کلام او خصوصاً دَهغه په غزل کښې دَسوز اوګداز عنصر هم ډیر ضروري دے. اودَسوز اواګداز تعلق دَداخلیت سره وی. ځکه څه وخت چې په جذباتو اواحساساتو کښې انتهائی شدّت پیداشی .دَهغې بیا دَقلم په ژبه اظهار دې کیفیت ته سوزاوګداز وئیلے شی . اودَامجد حسانؔ خلجی په شاعرۍ کښې دا عنصر ترډیره حده پورې شامل دے . په صحیح معنو کښې داچه دَ امجد حسانؔ صیب کلام دَ سوزوګداز ، دَ دړدیدلو جذباتو او دَغم انګیزه احساساتو نه ډک دے.

ـ دغه یادونه چې جانانه څنګه تا ژړوی
باور دې اوشه په خدائی چې داسی ماژړوی



ـ خوب خندامے شوله ورکه ستاله غمه
لکه ساه چې رانه وتی یاره سمه

په کلام کښې جدّت پیداکول فن سره سره یو کمال هم دے . دَجدّت نه مراد دادے چی دَکلام په اوریدو اوریدونکے نوے والے ،جاذبیت خوند او فرحت محسوس کړی. اوهم دغه شان دَ امجد حسان صیب په کلام کښې روایت اوجدّت دواړه او بړه په اوبړه روان دی . او په هر شعر کښې ځان له یو نوے والے ،جاذبیت اوخوند موجود دے.

ـ اسویلو مې دګوګل نه دجانان خبرې اوکړې
ملګرو مودو پس مے دې خفګان خبرې اوکړې

ـ نور به دې کوڅی ته حسّان نۀ راځی
هسې مے دې خلی ته ورله څۀ راځی

ـ دَسپینو خورو صفت مُه کړه مُلا جانا بیابیا
داسې جنت دې په بلاشی دَاشنا نه بغیر

پــه هــر دور کښــې دَ عـقـل اودَپوهې خاوندانو دَ زمانې دَنا کړدو نـه ګیله کړے ده۔ اولګیادی کوی ئ هم ۔ دَپښتو ژبې حساس شاعران هم دَوخت نه ګیله من پاتې شوی دی۔ امجد حسانؔ صاحب په کلام کښې دګیلو اصل وجه هم دا ده۔ چې وختـونـه دَنااهلـو په سرتاج کیږدی۔ اواهل په خاورو لـوغړ وی۔ دَ نااهلو پـه غاړو کښې دَ سرو امیلونه زانګی ۔ اواهـل پـه هـرځائې کښې دَذلت اودَ هواری ژوند تیـروی۔ دَامجد حسانؔ صیب پـه آزاد نـظمونو اوپه بعضو شعرونو کښې داسې مضامین صفابښکاری۔

بهـرحـال مـونږ به داووایو ، چې دامجد حسانؔ صیب شـاعری په حقیقی معنو کښې دَپښتو ادب دَ سباوؤن دَنمر روښـانــه څـړیکــه ده۔ اویـوه ښـکلې اضافـه ده۔ دَیو ورور اویو خوږ ملګری حیثیت سره دَزړهٔ دَکومې نه دوی دَپاره زما دا دُعـا ده۔ چې الله تعالیٰ دې دوی خپل فضل اورحم سره په دنیا او آخرت کښې په لویو مرتبو اوچت کړی۔(آمین)

(مظهر جاوید)



# د وړوکی حسانؔ وړې سلګۍ

ده حسانؔ دهٔ شعـرونـو په حقله لیک عین داصولو مطابق دې او دافـن متقاضی هم دے۔ خوزهٔ به دهٔ هغه پرشاعری دهٔ هغـه ده ستـونـزمـن تکل اودهغه ده شخصیت هغه پانړی برسیـره کـړلـو لــه تـرجیـح ورکـول غـوره کنړم ۔ولی چې حسانؔ پـرعـمردې ابتدأ کښې دهٔ انتها ادراک اوشعرې فهم دَخپـل قـلـم سره هـم نوا کړی دی ۔ زهٔ ده ګنړم چې ده شعر پرزړهٔ کښې سړیکی نه وې۔ اوهر احساس ئې سلګونه وی نیـولـے ۔ نـو هغــه ده شعــر تمسخر کیدے شی نـه چې یـوصینف ولی چی دالوبه په محنت نه راځې اوکه څوک ئې راولـې اویاچا حاصل کړې هم وې نو ده هغه شاعر اود فـطـرتـی شاعـر په شاعـری کښـې نوزما پر نـزد کښـې پیدائشـی شـاعـر پــه تکـواو شعر غیږی تـه راوړی شوی شاعری کښې ده بلها تضاد وی۔

نـوځکـه چې حسانؔ کـلــه هـم څـه وئیلی دی نودهٔ سـوزنــازک تـارونــه ئې چیـړلـې دې۔ یـوڅو نمونی چې

زمازړۀ ته هم پروتې دې۔

۔ تـا خـوبـه وئيـل چـې مينـه تـوقـی دې حسـانـه
خـونـن دې پـه دې سترګـو کښې دا اوښکې ولې وينمه

۔ چــې مـــې سپک ګـنــړی دَخـــاورو دَخـــزلــو
ربـــه مـــاورلـــه پــه سترګـو کښـې لږ حـس کـړې

۔ مـاخـو دَ جـوش اودَ ځـوانـې خبـرې نـه وې کـړې
سـاقـی جـامـونـه کـړل الټـه چې ميـخـانـه بـنـده ده

دَادب مشـرانو په نزد دۀ يو شاعر دپاره تحلص يواهم عـنـصـر دے۔ پـه دې منطق پر باندې د امجد حسانؔ خلجی صيب ده سوچ پـنـجی ده دولسو کالو په عمر ښخی شوې وې ۔ اومـاته ئې وئيل چې ما ځان دپاره تحلص خوښ کړے دے۔ زمـا پـه پـوښتـنـه باندې څرګنده شوه چې حسان دے۔ دغه نوم ځما هم ډير خوښ شو ۔



ولـې چې دۀ ژونـد پـه هـر اړخ زمونږ دپاره الله جل شانـه ده کـائـنـاتِ وسعتونو نه هم سيوه فراخه هستيانی يعنی صحابه کرام پيدا کړې دې۔

امـجـد حسـان خلجی تحلص "حسان" دحسان ابن ثابت پـه تـاثر کښې هغه خوښ کړے دے ۔ په آخره کښې ديو مشر رور دهغه نه هم زيات ديو دوست په حيثيت دادعا به اوکړم چې۔

اے دلـوح اوقـلـم مـالـکه ! چې دامجد حسان خلجی قـلـم ده هـغـه او دهـغـه پـه شان دپښتوادب مينانو دپاره يو رهنما اوګرځوی۔

اوخـدايـه طـاقت ورکړی چې مونږ سره هم دغه شان دليـک سلسله شريکوی۔

(امين ثمه امين)

**عادل شاه خلجی**

(ادب دوست لندن)

## ......﴿یو څود زړه خبرې﴾......

هرکله چې په یوقوم کښې انقلاب راغلے یاخو دَتحریر په وجه دے اویادتقریر.

اوهرکله چې تحریر میدان تا سرے کوزشی اوتاریخ پاڼړه په پاڼړه اوګورې نوشاعرې دپو هانو په وائنه اوپه درُون نظر کښې دتحریرونو مُور ګنړلے شی. چونکه زهٔ خو په دغه خوشفهمۍ کښې نه یم مبتلااونه دا دعوا کووم خودومره ضرور وئیل غواړم پوره په بخبنانه چې کله هم د انسان زړهٔ راډک شوے زماپهٔ خیال درې لارې ئې اختیار کړې دې اول لاره دَ ژړهٔ دویم دَمایوسی دریمه دشاعری نوماهم په دغه لارو کښې د شاعرې لاریعنی د وړوسلګو لاره اختیار کړی دا اودخپلو سُوو اسویلو ترجمانی مې دشاعری په انداز کښې کړی ده. اودکومودرنو له وجې چې ما دا لاره اختیار کړې نو هغه د پښتنو اتفاق او رورولی. هم دې خبرو زه ډیرحساس کړے یم چې آخرولې؟

زمونږ نه خپله پښتوپردې کیږی.

اوآخرولی؟ هغه قوم چې یوه نمونه وه درس جهان



ته په رورولی اواتفاق کښې اوپه مخ دَ زمکه یو مثال وو. نو آخرولی؟ هغه رورولی اواتفاق داسی ورځ تر ورځه پیکه کیږی . هم د دې درنولا وجی ما دتحریرلار اختیار کړه. اودپښتون خوشحالئ او رورولی اواتفاق مې ځان ته یُون جوړکړو.

خپل دې منزل کښې یعنی وړوسلګو کښې چی ماته څومره ډاډګیرنئ او حوصلی راکړے شوی دومره ستغی سپوری هم ددې فن ناخبره پوهانو خوتردې زهٔ جوړکړے ووم چې زهٔ خپل واړه قدمونه روسته کړم اودې منزل ته شا کړم. په دې موقعه ماته دعادل شاه خلجی یوشعر رایاد شو.

ے زما دَ، فن کفن دفن ئې وکړو
نقاد چې وخاندل وئیل داخنګ لیک دے

خوقربان دیو څومشرانو نه شم. چاچې څما حوصلی نورې هم مضبوطی کړې اوزما پښی ئې په دغه آواره ډاګه

نورې هم کلکي کړلې. ګويا دوې زمانه ډير مخکښې دغه يُون کوو او روان وو. اوزۀ ئې دځان سره دخپلو درنو سُورو دلاندې ملګرے کړم اودغه منزل ته ئې روان کړم.

اوپه دغه اغيزه لار ئې دازغونه بچ کړم اودګلونو خوشبوئې ته ئې مخامخ کړم.

بايد دلته تشرکيره دهغوې وکړم زه اول دَ ډاکټر همايون هما صاحب سره ملاوشوم چې د پښتودآدب ځانګه نه بلکه وُنه ده ماچې څومره د دوی نوم اوريدلے وو دومره زيات مې ورسره دليدو ارمان وو. خوماته ئې زيارت دخپلو وړوسلګو له برکته وشو. دوې زما حوصلې په حقيقت کښې حوصلې کړې اودوې زما فکرونه حقيقت کښې فکرونه کړل.

اوبيا زۀ محمد اسرارتل صاحب له ورغلم . دهغوی باره کښې به صرف دومره اوائيم چې څنګ دهغوی په



شعراو شاعرۍ کښې خو ړوالے دے. نوداخبره پوره په دعوا کوم چې اتل صاحب په حقيقت کښې ددې نه بلها درجې خوږ دے.

بايددلته ستائنه د حسين احمد صادق صاحب پکار ده چې د مردان دخلقو دسرګل دے. الله تعالیٰ ورله دشعر اوشاعرۍ په ميدان کښې ډيره پوهه ورکړې ده. دهر سړی دشاعرۍ تنده پرې ماتيږی دغزل رازدنظم تار ډير ښه پيژنی.

که مظهرجاويد صاحب دلته هيروم نودابه زه زياتے کوم ولې چې مظهرجاويد صاحب خود اردو ادب سره تعلق لری او د دريو کتابونو خاوند هم دے خوچې ماسره ئې په دې وړوسلګو کښې کومې هلې ځلې کړې دې نو هغه د هيريدونه دې.

اوپه تیره تیره عادل شاه خلجی صاحب چې دښائسته ځوانی مالک اوپه شاعری کښې دمهارت اوپه ادب میئن دستائنی وړدے .زما ورسره دوینی رشته تهیک ده د رورولی دا خو مانه ئې دوستی رورولې هیره کړی ده .دانن چې تاسوته مخ یم دامحنت "عادل شاه خلجی" صاحب دے چې نن ئې رنګ راوړو۔

زۀ ددې ټولو حضراتو ډیر مشکور یم .زما دالله تعالیٰ نه دادعا ده چې الله تعالیٰ دی ددوی حضراتو په عمر اوعمل کښې برکت واچوی ۔ الله تعالیٰ دوی دآدب دپاره ژوندی ساتې۔

امین ثمه امین

امجد حسآن خلجی

درک (مردان خلجی ټولنه 0333-9136036)





ډیر یم پروتے دَ نظره قدردان مالکه
دامې ګناه دا که عذاب که امتحان مالکه

ماچې ګنړې دَزمکې سَر باندې خیرنه خاوره
لړ خو آواز وکړه دَ هغی لوئې اسمان مالکه

جوش دَځوانئ دے غورځنګونه دې ډوبیږم پکښې
بل خواه رُخسار باندې دَ اوښکو دے باران مالکه

زۀ به دچا په لاس کښې اوګورم تنړئ دَقمیص
خدایه چې وې ریخی دَهغه چاګریوان مالکه

نوردَ دُنیا ددډې غم تا زۀ دَتهنړې نه یم
یوپه یو مادے لمبولے خپل ارمان مالکه

نورئې بس ورکه دخپل ذات په نندارو کښې
ستادَدُنیا دغمه ستړے دے حسآن مالکه

★★

## یو شعر:۔

بے پناه چې ئې په عشق کښې دردمند پُروت یم
راښکاره به شی په ورځ دۀ قیامت مخ

★★





چې نمر ډوب شی دَځکنړی ځکنړی ماښام تیارۀ خوره شی
نو په مادَ ساقی جان دَ مېو جام تیارۀ خوره شی

پېر زوئنه دَجانان دا کوخودی مې ګوري ربه
چې نزدې شم کله یار ته نو مُدام تیارۀ خوره شی

بیا بوډا هم پکښې ځوان شی دَ مستئ خبرې وکړی
ساقی جانه ستا محفل کښې چې دَجام تیارۀ خوره شی

څوک خوشحاله وی تیارې ته چې پکښې سپین جانان به مومم
په چا سمه دَماښامه د ناکام تیارۀ خوره شی

واړه غمه دې مدهوش کړۀ بیاترې زړ وځې حسانه
میکده دا بے خودی ده اوس به عام تیارۀ خوره شی

★★



شِفق چې راغے را پہ سَرشوۀ دَ نظر جهګړه
غربت دې ورک شې راسره وکړه خپل دلبر جهګړه

پہ زُور ئې نشو اخستے کفن پہ غاړه ګرزوم
جانان ئې واخست راسره ئې وکړله پہ زر جهګړه

بے وسه نہ یم خو حالات بے وسه کړے یمہ
داخو جانان دے مونږه کوو دغرۀ پہ سر جهګړه

وخت چې بے رُخه شونو ډیرو خو بیو مخ واړوو
قسمت کوی راسره دغسې اکثر جهګړه

هجرانه لاس مې دګریوانه پہ راستی اوباځه
راسره کړې بہ صبا مړیم پہ بستر جهګړه



شم وار خطا اوترا وتر دَ ځانه ورک شمه زۀ
قسمته بس کړه نکړی ځوک دومره زر زر جهګړه

راځی راټول شی پښتنو پہ دې نقطه دَمینې
مرغی ګزارشی چې یې وی دَ پېروپَر جهګړه

حسانہ چُپ شه دادُنیا دۀ دلته زر چلیږی
دَجفا کار سره مې پاتې دَمحشر جهګړه





په صبا مابنام دې اخلم
په خپل ژوند تمام دې اخلم

صبر اوکه څان حرخومه
دا د میو جام دې اخلم

ته که هرڅه ئې دلبره
خاص دې اخلم عام دې اخلم

جادوګره څان پرې وژنم
وَل دَ زلفو دام دې اخلم

بس چې زۀ یم څما خیال وی
سوچ دې اخلم پام دې اخلم



یوۀ ورځ نه شوه غزله
زۀ حسان مُدام دې اخلم

★★

## یو شعر:۔

چې په خیال باندې مې وریځې دۀ غم راغلې
لا دۀ سترګو بارانونه مې راښکې شو

★★



دغه یادونه چې جانانه څنګه تا ژړوي
باور دې اوشه په خدائې چې داسې ماژړوي

په یار پسې داسې لیوال شو لونن هغه زلمے
دۀ چم وارۀ ئې ورته یادئ لیونے بیاژړوي

مائې د مینې خندا غوښتې وه مُنکرېږی نۀ یم
دانن چې خاندی ماته نۀ ماپه خنداژړوي

نوری ګیلې به زۀ دَ چانه اوآخرولې اوکړم
بس دابه وایم چې خفګان مې په ژړا ژړاوي

راتۀ ئې وئیل حسانه بس کړه حیثیت دې څه دے
داستا ربنتیامې نن جانانه په ربنتیا ژړاوي







څنګ ئې په یو چغه په خفګان دَ کلی اوویستم
خپل جانان مې څومره په ارمان دَ کلی اوویستم

سُور جهنم خوښ مې دے خوتاؤ دې بے وسئ نه
زۀ څیرې ګریوان مې خپل جانان دکلی اوویستم

خپل عکس رانه مخ واړوؤ مخ چې آئینې ته شوم
نن خومې خپل ځان هم دخپل ځان دَکلی اوویستم

څوک له کلی چرته څوک وباسي چې پرې تورنه وی
زۀ خو په نیستئ خلقو حسانؔ دَکلی اوویستم





هـریـو لـفـظ هـریـو پیـونـد هـره کـړئ
ستـا پـه نـوم مـې ده لیـکـلې جـفـاکـار

د دې یـو احسـان درانــه دې پــه مـابـار دی
چـې ستـا غـم دَ نـورو غـمـو کـړم اوزګـار

یـا پتـې یـا بـه کتـې ووزهٔ خـو دهـقـان ووم
خـوستـا غـم کـړمـه جـانـانـه ډیرهوښیار

دَمنصور غـونـدې پـه مرګ باندې خوشحال یم
پـــه دار خیـــژم خـــودزلـفـو پـــه یـوتـار

پـه کـور کـلـې دَحسـان پښتـنـه وکـړه
مـعـلـومیږی هـرانسـان پـه خپـل کِـردار







لـړ غـونـدې مـې پټ دهٔ تـوروزلـفـو پـه مـاښام کـړه
بیـا مـادَخپـلـې میـنـې دَمستـۍ دَمیـوجـام کـړه

مستـۍ او بې خـودۍ کښې مې لـهٔ ځـانه بې خبرکړه
زمـادَ خـولـې کـلام سـاقی دَخپلې خولې کلام کـړه

پـه سترګـو مې اودهٔ کـه اوپـه شـونډو مې مدهوش کړه
داسې مې بې هـوش کـړه بې خودۍ تـه مې انعـام کړه

بـغـاوت ستـادَ قـدرت نـه دَ میـخـان خبـره صحیـح ده
تـه وې حوري تـکـې سپینې یـوه حوره خوپـه بـام کړه

خیـالـونـه لیـونـی اواحسـاسـات مـې کـړه مدهوشـه
چې یار تـه ورنـزدې شـمـه مـاښـام کښې مې بدنام کړه

شراب دې ده سُرو شونډو وو ورکړی لیونی له
هم دغه سره شراب ورته اوس تهول عمر انعام کړه

★★

**یوشعر:۔**

چې مې سپک گنړی ده خاورو دَحزلو
ربّه ماورله په سترگو کښې لږحَس کړې

★★





تهٔ به جانان مې هم لیدلې په آسمان سپوږمۍ
ځکه ولاړ په نیمه شپه یم زهٔ حسانؔ سپوږمۍ

دبې وسۍ نه به اوس څنگه ستا وصال اوکړمه
شلیدلې ښکاری په رنړا مې ستا گریوان سپوږمۍ

زړهٔ خومې غواړی چې بس تاته سجده وکړمه
ولې د کلی مې راغلې دَجانان سپوږمۍ

چې زلیخې څنگه په زور باندې یوسف خپلؤه
زه به دې ناوې په ژړا کړم د ارمان سپوږمۍ

کلې مې څنگه ؤو همه یاران مې څنگ وؤ پکښې
تپوس خو نه کو ؤ چاد لیونۍ غوندې حسانؔ سپوږمۍ

★★

## څلوریزه

یمه بوډا یاره منم خوځوان مې فکر
داسې مې یادیږي څنګ چې یاددې راته ذکر

ده تسبحو به مُرو شونډې دې ښکلوم ه
کړم کافر که مسلمان مُلادې شکر







ماتیر کړے ستادَ پارۀ تهول ژوندون وۀ زوړ قمیص کښې
دا دروغ نه دی جانانه ستا لټون وۀ زوړ قمیص کښې

دا خیبر چې نن خیبر دے دا برکت د عاجزئ دے
پُښتنو چې جوړ خیبر کړو دغه یُون وۀ زوړ قیمص کښې

نه مې ښکل کړو نه بدل شومه په عشق کښې
هم تړون وو زوړ قمیص کښې هم بیلتون وۀ زوړ قمیص کښې

زوړ قیمص شولو حسان ته آخر ولې پیغور
چې زړا به ئی شمله وه زوړ پښتون وو زوړ قمیص کښې



## یو شعر:۔

په سپرلي کښې ترینه خبرشولې حسانهٓ
په خزان کښې به وریادشې یو ځل بیا







ماتهوله شپه حلقه دځان سره حساب کړے دے
چې اے دِهقانه څومره کاردې دَنواب کړے دے

دلته خوقیدی یم ربه هلته به ځولۍ وی
خو ږژوندون مې دې ډیرو سوالونو عذاب کړے دے

مونږه دارمان په قتل ټول عمرژړاکړی ده
مونږه ډیر ظلم همیشه په خپل شباب کړے دے

جانانه ستا خبرې نورې د نورو نورې
دَبل په خوله دې راته ولې سوال جواب کړے دے

حسانهٓ نوربه درته څۀ دخپل زړګۍ وائیمه
په غریبۍ کښې یې دَحسن انتخاب کړے دے





ژړا دې بس که دا به شور راولی
دا بې وسی به دې پیغور روالی

هغوی خولاړل شول دَ خاورو لاندې
څوک به زما دَ سترګو تور راولی

زۀ لیونے یم لېونی څه خبر
څوک به زما شعور ترکور راولی

حسان ته څه به وائم څه کوې ته
درد چې غزل لره په زور راولی





## یو شعر:۔

ماحود جوش اوډَ ځوانۍ خبرې نه وی کړې
ساقې جامونه کړل نسکور چې میخانه بنده ده



زۀ خو هیڅ نـه وومـه ربّـه هـر څه تاکړم
لا دَ څو څاڅکو اوبو نـه دې پیداکړم

دۀ ویښتـه نـه مـې نرے نازک بدن وو
څه بُوګه بوګه وَجود دې په دنیا کړم

لا مې سترګې ستا رحمت ته تیتی نه دی
نن به ئې څښمه میخانه کښې به ګداکړم

ښه زلمے یم دۀ تنکی وصال خبریم
څکه نه ګورم دَ سترګو دې حیاء کړم

په بدل کښې زۀ دَ عشق غلام نه یم
ته خبرِی راته کوه زۀ به دُعاکړم!







اسویلو مې دګوګل نه دَجانان خبری وکړې
ملګرو مودو پس مې دې خفګان خبرې وکړې

واخله مې بس ربّه نوریه داسې زندګۍ څه
جانان چې مخامخ مې ده ګریوان خبرې وکړې

تخلیق ئې داسې شوے چې نن بیا هم شوے لوظه
هر څو کومې جانان څه په قرآن خبرې وکړې

اور شومه لمبه شومه ماته کچکول ذره شومه
چې نن ئې راته څنګه په یوشان خبری اوکړې

ناساپه ئې چې ستا شفقی شونډو تا وریام شو
پوهیږم نه چې څنګ خفه حسآن خبرې وکړې





څنګ ئې ګنډلې ځائے په ځائے دَ بے وسې لوپټه
څنګ به مې هیره شی خدائیګو دَ ابۍ لوپټه

غیرې کښې نیولے یم بیلدِو باندې څه داسی ژاړم
لکـه پـه سَر چې مې نیولې ده جړۍ لوپټـه

ماحوبه خپـل قمیص ژړلو څه خبرووم له یار
په سُو رلاتار کښې ئې په سَروه یو سُورۍ لوپټه

هسـی ئے مـړ پـه مـړو کتو کړمه یارانو زۀ
نــه ئے پړونے شوم دَمخ اونــه نرۍ لـوپټــه







څه خو ضرور شته دے حسانہ دَمابنام غیرې کښې
سمه مستی ده ګډېدل دی نن دَ جام غیرې کښې

دلتـه زۀ خپـل سُورے څادر ګنړم اوزګار لا نه یم
دَبے وسیٔ ارمان به پټ کړم دَناکام غیرې کښې

لا بـه تـرڅو مې لـه نـظره خپـل نظرتښتوې
لړمې راونغاړه په سترګو کښې دَ پام غیرې کښې

دومره دې بس ده خاموشی دَ وړو شونډو صنم
هسی نه مړشم اسویلې ته دَ انعام غیرې کښې

دلتـه مـوسـم هـم دبُلبـل په زیست لوبې کوی
ولې نـه واخلـه مې جانانه خو دوام غیرې کښې

حسانه ورک شی ستادې فن خو ژۀ زنځوره کړمه

لوئې او واړۀ تول ژړوې دَخپل کلام غیرۀ کښې

★★

## یو شعر:۔

تــاخــوبــه وئیــل چې میــنــه تهوقې دی حســانــه

خو نن دې په دې سترګو کښې دا اوښکې ولې وینمه

★★





څنګ ژۀ ډیوی لـه پُوکے ورکړمه سحرلړې دے

چې غرونه مات کړی پښتنو کښې هغه سرلړې دے

توره تیارۀ دۀ نیـمه لار کښې ئې یوائې پریښوم

هم ئې احساس ازغن ازغن دے هم ئې در لړې دے

چې شه زړګیه څنګ خزان کښې ګلاب راوړم تاله

سپـرلے هم لـری اودَ سُـروګلونو کر لری دے

دلتـه پـه خپل خیال کښې مُلوکه دَ ښائست جوړوم

هـلتــه زمـا نــه دَجانان بدن مرمر لړې دے

دلتـه مې هم په میخانه کښې جام ونه موندلو

هلتـه هم خدائیګو رانه حوض د کوثر لړې دے

هسې بې واره مه کړېږه دَ غيرت په نامه
توره سمبال که سر دې هم هغه سنګرلړې دے

هسې نه مړ شمه دلبره وارله ما نه کيږی
بلادې واخلم دَ حولګۍ ګورے اختر لړې دے

دَ چاپه طمه چې حسانه ته غزل کړو تيار
وينه نچوړ که دَهر ګه له ئې بشر لړې دے

★★





يمه پښتون پُښتون مې خوښ پښتون ايمان لرم
غم مې پښتون ارمان پښتون پښتون جانان لرم

جانانه هر څه دی منم خو يې رُخی نه منم
ژوند مې پښتون ننګ مې پښتون پښتون جهان لرم

دا اسويلی به دې راغونډ کړې غم به نه جوړ وی
زړۀ کښې غيرت مې دے پښتون پښتون خفګان لرم

رقيبه لاس دې کړه واپس ګريوان راتول مې کړه سم
په پښتو نحوا کښې پښتون ځوان پښتون حسآن لرم

★★



نور به دې کوڅې ته حسانؔ نه راځي
هسې مې دې خولۍ ته ورله څه راځي

چاچې کلی وال پسې خاندل به تل
کلی ته د ښاره وس هغه راځي

زۀ ګورمه رقیبه دَ چا سترګو ته
ستا دَ دې خبر وجواب ښه راځي

سر مې سر ګردانه شو پرې وځمه
څنګه په تیر عمر اوس هغه راځي



مونږه دَ کوکې خبره ونکړه
یار ته ډېرې ګرانې څنګ به خوله راځي

ژوندون مې دَ دردونو بس نعرې شولې
لیکل غوارم خوارۀ خولې له تراخه راځي



★★



جهنم کښې به خوشحال یم که مې دغه رنګ جنون وی
لوږه لوږه دې شی ورکه چې بس یاره ستالټون وی

ستا دوزخ نه نهٔ یریږم ستا جنت نه مړاخواه یم
چې بس حواکښې مې جانان وی ربّه دغه مې ژوندون وی

په دی سوچ کښې سحر مابښام شی میخانهٔ کښې په سر راږوم
چې کتل ئې مدهوشی ده ښکلول خوبه ئې خون وی

چې له کله جُدا شوے له هغې راته یادیږی
همیشه خوپاکه مینه کښې بیلتون یاره تړون وی





# ثلوریز

تکړهٔ ځوان ووم خوربّ ډیر کړمه مجبور
چې مې ثښبلې یو پیاله ستادَ سُرور

خیر دے زهٔ دې پرې ځوانی خپله په داؤ کړم
چې را ښکته شی نظر د دې مغرور





## یو شعر:۔

که غمونه ده دُنیا را باندی ډب شی
ځان به ځان ته کړم ویران ته به آباد کړم



# آزاد نظم

## فاصله (FASILA)

څو مره لرې ترينه راغلې
دومره لرى ترينه راغلې
چې يادونه فريادونه
څه زخمونه څه درودنه
څه د شپو مشغولتياګانې
څه کمبختى اداګانى
هر څه هر څه ترينه هير شو
چې خفه نه تاکے زير شو
نور به ته ورته څه يادئې
نه ته قيس شوې نه فرهاد ئې
دا جواز هم حقيقت دے
نوم ده عشق ګله قربت دے



ته ئې هېر کړې حسان ګله
اوښکى پاکى کړه پاګله
هن؟
لمن واخله
اوښکې پاکې کړه پاګله

★★





دیــار غــم رابــانــدې ولــګـوو ګـوزن
دا لـعـنـت خـو محبت کښـې ئـې د زن

سـتـا ښـیـګـړه دې پـه مـاتوره بلاشی
مُدام خـوری مې ستاغمونه میرات تن

دیـار میـنـه پـه کلو کلو خـرځیږی
مـالـه راکـړئ دَخپـل سـرپـه بیعـه من

یـوورځ دې هـم ګـډنـکـړو پـکښې یـار
دادې څـرنګـه رباب دے څـنګـه فـن

حسـان وائې هـلـه پـوهـه پـه مَتا شم
چې ګـلرنګ مې کله پریښے هم ازغن







زر بــه راتــه وائـی دادې چـانــه مخ پـټ کـړے دے
مـاتــه خـو چا ووې دائـی سـتـانــه مـخ پـټ کـړے دے

څـنـګـه دا دُنیـا ده هیـڅ مـعـنیٰ مفهوم ئـې نشتـه دے
چـا دَ خـوشـحـالئ چـادخـفـګـانـه مخ پـټ کـړے دے

ښـار تــه بــه درځـمـه سـتـا دیـدن لـه وس یـریـږم نـهٔ
هـلـتــه هـر انسـان دَبـل انسـانـه مـخ پـټ کـړے دے

بــره چـې درګـورم غــرور نـکـړم مـجـبـوری مـې ده
داخـو مې لـه خپـل ریـخې ګـریـوانـه مخ پټ کړے دے

نه چې ورته ګورم دۀ زغملو زور مې نشته دے
ځکه مادَ خپل خوا ږۀ جانانه مخ پټ کړے دے

ځکه خو حسانؔ ئے کړو رسوا په ټولو خلقو کښې
ولې دلته هرسړې د خپله ځانه مخ پټ کړے دے

★★

## یو شعر:۔

نن مې ورته سترګو کښې په سترګو سترګو اوئیل
دلته نشه غواړم میخانی ته به نور نه ځمه

★★



# ځلوریزه

څوک دنظره دَ چاډېر پاتی شی
څوک له حَزلو پسې تیر پاتې شې

دلته ګردش دۀ وخت بے حِس کړل خلق
چې کله کله تړې ځان هیرپاتې شی

★★

## یو شعر:۔

ترڅو به په دا حال ژاړې حسانؔه
ځان دا زلفو بندیوان کړه چې هوښیار شی

★★



انسان چې په انسان باندې دا وژنې عجيبه ده
ارمان چې په جانان باندې دا وژنې عجيبه ده

احساس مې بيا غيرت دے لمسولے ربّه خير کړې
خپل ځان چې مې په ځان باندې دا وژنی عجيبه ده

دَسوچ په فلسفو کښې يم ګير شوے ګردګاره
مسلم چې مسلمان باندې دا وژنی عجيبه ده

ژړامې مقدر شوه هيڅ مې ونکړل په عشق کښې
حسرت مې په خفګان باندې دا وژنی عجيبه ده

همش خومې خپل ځان دَ چا دۀ پښو خاورې ګڼلے
حسآن چې په جهان باندی دا وژنی عجيبه ده







دوه ورځې ژوند مې د وصال رانه هجران غواړی
احساس زلمے شو اوس غيرت مې خپل ارمان غواړی

دَژوند حوا بۀ مې دَلتهون په طمع تيرکړل
حسرت دَژوند نه مې فکرونه د جانان غواړی

ځنګ نيوی رنګ کښې شمه رنګ زما رنګين جانانه
زما ضميردے لا ژوندے رنګ د افغان غواړی

مونږ دَ جونګړی قدری ځائے پکښې ونه موندولو
ډيرو جهان په سراخستے دے آسمان غواړې

زۀ چې هر څومره تعجب وکړمه دومره کم دے
چې تول دردو نه خپل عزل لره حسآن غواړی



# دۀ پښتو ګيله

زړۀ مې پړق وچاودو پُښتو راله پيغور راکړو
چې سپينه پښتو ووم خلقو تاسو راله تور راکړو
زۀ خو پُښتو دغزنوی اودَخوشحال پُښتو ووم
زۀ دپُښتون دَمعرکو او دجرګو پښتو ووم
زۀ خو پښتو ووم دَ پُښتون دزړۀ غندله وومه
زۀ دخيبر دَهر ځلمې په خله غزله وومه
په هر يو کور کښې رورولی وۀ هم په ما آباده
غم خوبه غم وو خوښادې وه هم په ما ښاده
زۀ خو پښتو ووم خو پښتو شوله لامانه هيره
دې مغربی ثقافتونو کړمه تانه هيره
د درمان غيږ کښې يمه ناستی خودرمان ګورمه
په نصيب مينه دَ پښتون يم خوجانان ګورمه
دسرې جنډی سُوری دلاندی لږ سکون راشی
چې زاړه وختونه مې په خيال کښې دپښتون راشی
هغه جګې شملې دپُښتنو درانو چې کمی شولې



ځکه په زړه مې دپښتو سکروټی بلی شولې
ځلمې مې ټول دَ غمازيانو ثقافت کښې پټ دی
لږ ئې بيدار کړ پُښتنوپه قيامت کښې پټ دی
داسې ورک شوی تماشو اوپه لوګو کښې ځلمې
دوئ مې خنديږی اے همدمه په سلګو کښې ځلمې
دوی لا آواز دَبا چاخان يادغنی پکار دے
ياخو آواز اے پُښتنو دَغزنوې پکار دے
کو داسې نه وی پښتنو نو پردی شوی به يم
کوورکه نشم به خدائی ليونی شوی به يم
څوک مې لاځانه لرې کړې څوک رانه مخ اړاوې
داظلم نه دے چې خپل يار لتا نه مخ اړاوې
زۀ خوله ښه يم چې لاوسه پورې پائمه
کلکه پُښتويم اے پښتونه زۀ خوستا يمه
نولږه مې غيږ کښې ونيسی درنو اودپښتوپښتنو
دلروبرا اے غيرتيانو دَجرګو پُښتانو
داسې به چُپه خله خدائيکو رسوا کيږم نوره

لا کلـه ژاړمـه او لا کلـه بـه ژړیږم نـوره
نـودا جفـا پـریږدی پُښتـنـو لږه وفـا راکښی
لا مـودوژاړم پښتـنـو لـږه خـنـدارا کښـی
یاخو غصه دبیلتانه په وصل یخه مې کی
یاسره جنډه کښې مې رانغاړی اوخخه مې کی
کـوداسې نـه وی نو یو کار وکی درنو پښتنو
زما ګیلو باندی لږ کینی په جرګو پښتنو
تاسو بـه ښکاری اے درنو په ماددرنو پښتنو
دَافغـانستـان دَپیښـور اے دَ شـملـو پښتـنو
کو خپله مونکړه مه نو خبرئې لیونی حسانَه
نـودرنه څم به لاس به واخلم دپښتون ګریوانه
زما ځائے نه ورکیږی وئیلې وو باچا خان راته
ستاسو پښتـون اے پښتـنو زما جانان راتـه
نـوبیرته به څم دَ باچاخان دَقبر خاوری خکلوم
بس چیرته کښې څم دباچا خان دقبرخاوری خکلوم

★★





مـاچې هیـره کـړه پـه مینـه داستـامینـه
نـو مې اومـونـده خـدائیـګـو رښتیـا مینـه

د جـفـا اوبے رُخـی نـه ئې پـه آرام شـوم
چـې مـې پـریښـوه پـه دُنیـا دَدُنیـا مینـه

دَدُنیـا مینـه خـزلـه ورتـه ښکـاری
چـې سینـه کښې وی دَچـادَ عـقبـیٰ مینه

تـابـه سپـکـه نـه ګڼلـه مُلاجـانـه
څـومـره ښـه بـه وے کـه کـړې وه تـامینـه

نـه بدحـال ئـې نـه دې رنګ زیـړدے زلمیـه
تـعـجـب نـه دے چـې وے کـړې مـامینـه

د حسانه تپوس وکړئ مينه څۀ وی
چې په زړه کښې ئې پرته ده دچامينه

★★

## څلوريزه

چې پيری به بيا په روستو شباب کيږی
دا خبرې دمُلا په کتاب کيږی

ښه په لپو لپو ئې وښه په ماګرانه
دا ګناه به سُور دوزخ کښې ثواب کيږی

★★



## ......(هائيکو)......

نن ئې بيا څومره په مکيز کښې ووې
حسانه چرته وې چې نه ښکاريدې
پرُون اوبو له چې ګودر ته تلمه

هره ګهړې مې ستا په ذکر کړې
شپه ده که ورځ ده اے زما جانانه
څومره ثواب څومره ګناه مې کړې

★★



یاره دا څنګ مُسلمانی به وي داستانه بغیر
داسجدې مې عادت نه دی خویو چانه بغیر

دَ سپینو خورو صفت مکړهٔ مولاجانانه بیابیا
داسې جنت دې په بلاشی داشنانه بغیر

چې پکښې هرخواه دَشرابو سرې ولې بهیږی
هلته مزه به نوره څه وې دګناه نه بغیر

چې منتونه او دهٔ یار دَ کوځې خاوری نه وی
قدم به کیږنږدم جنت کښې یاره ستانه بغیر

جانان پیغور دَ مدهوشۍ راکړے نن حسانه
ښه به ئې په لپو لپو څښم خودَ ګډانه بغیر







که هر څووختونه تیرشی زوړخیبریم
څنګ بدل شم زهٔ دَ هرپښتون نظریم

چې راځې زما عظمت ته سلامی شه
زهٔ دَ قبلې مخ دَ کعبې وردَ دین سنګریم

لږ غوندې مې غیږ کښې ونیسه خیبرپلاره
ستا اولاد یم خپل خیبره خوبے دریم

دا ربنتیا خومور ځانګو کښې راښودلی
چې اول ځوئے دخیبر بیادَ بشریم

پښتنو له اوپښتو له افتخاریم
ده غیرت اوخلوص دردَ میني وریم

کلک پښتون یم په نیزو مې پروا نشته
خو په مړو کتو پریوتے زۀ اکثریم

کونتې چې مې په لاس او په خُله ساه شوه
نو اوس مې دلبر راغے چې حسا نه ستا دلبریم

★★



# ثلوریزه

ماوئیل یو هجر به وی نو بیا به مړ شم
خو غمونه ئې دَ شاتو په رنګ تار شی

چې په لیچو کښې خندا کړی تریخ جانان مې
اوده شوې احساسات مې ټول بیدار شی

★★



چې راواړئ مې په سربستر دَخاؤرو
نو نظر به شي بدل منظر دخاؤرو

مادلبر پسې دَ ځان ايره کړو
اوس نسبت راته کوي اکثر دَخاورو

څومره زر اجله راغلې واخطاشوم
ماخونه وولا څنډلے سَر دَخاؤرو

ځان دَ يار دَ پښو دَ خاورو برابر کړه
همشه خلقو موندلې زردَ خاؤرو

ګرځيدو پَرون حسّان په دغه خاؤره
په سينه ئې دے نن پُروت کمر دخاورو

★★





اے غُربته داسې سپک دې کړم جهان کښې
چې لکه الوزې خَزَلې په طوفان کښې

زۀ يم خپله ليتې پيتې غُورزيدلے
څنګ را پاڅومه همدمه ته باران کښې

دې احساس له به آرام مې څنګه راشي
زۀ چې تا يمه ترلے په خپل ځان کښې

زۀ هر رګ کښې ستا دَ وينې مشغولا يم
څله ګورې مې مکان اوپه زمان کښې

دا چې تول په تول لُوګے دَخپل جانان شي
ربّه دومره ځائے پيدا کړې په حسّان کښې

★★



یـو کتـوئـې زندګـی مـې بـنـدګـی کـړه
چـې لــه ورایـائـې خـنـدابـه اننـګـی کـړه

څـه دیـار غـمـونـه خـوری مې ابۍ مړشوم
بـل غـربـت مـې لـنـډه تـنـګـه زندګـی کـړه

کـرامـت بـه ستـا ضـرور وی چـې نـن دایـم
ستـا یـادونـو راتـه غـم هـم خوشحـالـی کـړه

★★





ښـه لـګـی جـانـانـه واړه ښـۀ لـګـی
ستـا کـاږۀ کـاتـۀ رسـاپـه زړۀ لـګـی

څـنـګـه اوښـکې ودرومـه نـاصـحـه زۀ
هـر ګـهـړئ دَیـار د غـم رانـجـۀ لـګـی

ستـا نـه پـس یـادونـه دې نـخـرې کـوی
هـر څـوکـه تـراخـۀ دې خـو خـواږۀ لـګـی

مـا چـوه تـنـدے بـس دادے لاړ مـه
ګـلـې مـا څـخـه دې ولـې نـه لـګـی

وئیـل یـې حسانـه څـنـګـه هیرشـومـه
مـاتـه یـار سـحـر مـاښـام هـغـه لـګـی

★★



څنګ چې ارمان کړلې جانان پسې وړې سلګۍ
داسې مې ځان کړلې په ځان پسې وړې سلګۍ

سترګې به وچې کړمه اوښکې به په زوره ودروم
خو څنګ به غلې شې ګریوان پسې وړې سلګۍ

ته خو ئې تن کښې زما ساه څنګه به هیر شی له ما
ماحومُدام کړې خفګان پسې وړې سلګۍ

مونږهٔ دَجام د تصوره څکه نه یو اوتې
زمونږ ارمان کړې په ارمان پسې وړې سلګۍ



مونږ له دَخلقو پیغورونو زندګی کړه تنګه
ډیر پسې ژاړې کړی جهان پسې وړې سلګۍ

څوک دَ ژړا اودَخفګان ورته کفن کښې نشته
خوخپلې غزلې کړی حسآن پسې وړې سلګۍ

★★





ورانه شوله بیا دَمحبت قېصه
خولۍ له چې د راغله دَ رخصت قېصه

زۀ به ئی کوڅی پله نورنه ځم
هسی مې عادت دا داعادت قېصه

ښار کښې چی بے ځانه شوم پے دره شوم
نو هله راپه زړه شوه دمهلت قېصه

زلفی دی ښاماری دی منم ئې خو
مونږ هم زده کړی دَ وخشت قېصه

حسآن ئې دۀ تهمت به دار تړلے دے
څکه په جار کی نه دَالفت قېصه







څکه غلے یم بے وسی راته نن اوئیل
نوردې وژنم کودې اوتولږ سُپوڼ

نه حلاصیږم تعجب یم ورته وړے
چې تړلے یم په زلفوکه په بوڼ

هغه به څه په رچیدو دګل خفه شی
چې ئی کړے ګلاب نه ئی په عمرسُوڼ

چې دپاکی مینی خوند ورته دُوزخ کړې
دامولاپه سترګو ړوند په غو ږو کوڼ

دحسآن وانړه بے وسی پکښې ښکاره شوې
دیارمخ ئې ائینی نه دے هم روڼ





ګرانه دادې څه وکړل په مابانديٍ
څوک خودمره ظلم نکړي چابانديٍ

نور د بے وسیٔ امتحان مه اخله
هسے خندوې خلق په مابانديٍ

زۀ په غم کښې ډوب يم ياره سوچ وکړه
څنګه تاته وخاندم خندابانديٍ



هر څوک ه ژړيږی له مودوژاړی
خوحسانه ستا وړی سلګی ته نه رسی





# آزاد نظم

## غفلت (GhAFLAT)

د دې وخت مظلومې مورله
يو موسٰا غيرۀ کښې ورکړه
دادَحق نعٔره بلنده
دچارړا دَخولې زينت کړه
ړندې سترګې هم بينا کړه

کونړله هم سماعت ورکړه

د هاتهي غوږ کښې اوده دے

لږ هغه هم رابيدار کړه

شل اوګوږ په خپو روان کړه

ربّه داز ما وطن ودان کړه

هغه توره دَ خالدٌ را

چې داقوم پرې توره ورشي

ورکه ورکه ورله ورکه

يو موسٰا غوندې کښې ورکه

بيا به زۀ هم ورته ګورم

نوبيا به ئې زۀ هم تماشا کړم

هنه!

نوبيا به آورم

بيابه وائم

بيا به ليکم بيا به ستا ئم

چې ثنګ فرغون غوندې خوبونه



زمونږ سترګو کښې ځائيږي

هن!

ثنګ فرغون غوندې خوبونه

زمونږ سترګو کښې ځائيږي

★★

## (څلوريزه)

نن ريخې ريخې ګريوان ته چې مې پام شو

راغونډو مې پے وسئ کښې چې ماښام شو

ساقي نن تشې پيالئ به دې ماتومه

هجر ويشتے يم په زړه خود مې تمام شو

★★



بندګی مې ستادا خوښه دَبل چانه
هسې نه په مړو کتومې څوک بنده کړي

بندګی خوتر مسجد اوکعبې ښه ده
څنګ بنده دے چې دابل ته سجده کړي

داسې ياردې خدائې ورک له توروغرو کړي
ستا نه غير چې ستالمن تاله ګنده کړي

په ډير څه خو چا رقيب ته غږ ونکړو
خوپه غلا يار ته کتل زما جنده کړي

حسان وائې بيا به زاړې زه به مريم
په ژړا په څوک مرده څنګه زنده کړي







ده خپل ذات په سُوري دومره مې باور کړو
ورپسې چې روروتلم ځان شو له ځان ورک

دې يو سوال مې زندګی کړه بے آرامه
زۀ ترې ورک شوم کو زمانه شو جانان ورک

دلتهون لاره يوه د خو مقصد بيل
دَ چا ورکه د خانی زمونږ ګريوان ورک

په ازغنه لارې داسې ځانله پريښوم
يويو دُرومې شو له مانه ټول ياران ورک

څه اوتر اوتر دَيار کو څو کښې ګورم
چې کم عقله غوندې چرته شوارمان ورک

دا به عرش ته نیغه رسي یا هندویم
چې لاس پُورته کړم زما نه شی آسمان ورک

تا چې کلے دَ چاسَر باندې وو پریښے
کلے څه کوې حسانؔ شوله جهان ؤرک







دا جامونه دې نسکورکړه بس سحرشو
غم دې دومره وارخطا کړو چې اوترشو

بیا به ستا دَنزدیکت سوالونه نکړی
که ماشوم احساس زلمے شواو خبر شو

دامُلا اوس د ممبر لائق خُونه دے
داد پاکې مینې باب باندې مُنکر شو

چې مې کډه له دې کلې وړۀ څوک نه وو
جنازې پسې تول کلے رابهر شو

اے حساؔ نه هندو نه ئې مسلمان ئې
دومره مِۀ اوباڅه توبې بس دے سحر شو



## څلوریزه

د ښار ژوندون کښې خوښ د کلي ژوند ورته ډیر ګران دے
بیا هم په کلی وال حسانؔ میئن ښکلے جانان دے

بنګړې چې ئې غوغښتل نوپه شړنګا ئې دَ پانزیب وئیل
کجل دې هم رانه وړل دَبنګړو مې ډیر ارمان دے







مانه وکړه چې په کومه ورځ یار څنډېږه
له هغې ورځې مې غم ونیو په تېنډېږه

نن ده یار غمونو وګټه مابېله
بخار وکړلو پرهر ساه مې شوه لنډېږه

بے وسی څنګه ګزار کړم پوهه نه شوم
چې شمله مې دَ بابا شوه رانه کنډېږه

سور التاړ دے څېږه دۀ خیټې جهنم مې
څومره ګرانه دا خدائیګو داسې منډېږه

چې مې یونظر لیدلے بیا ورک شوے
نو څنګه ماته کړم حسانؔ دَوصل تنده





دبے تابئ دا اسویلې مې په یودم کښې وځی
چې زندګی مې همیشه دَ چاپه غم کښې وځی

راته ئې وئیل چې قسم اوخوره میخانې ته مه ځه
نودَ ماښامه ټوله شپه په ماقسم کښې وځی

تشې بوتلې ټنګوی ساقی مستی یادوی
دغه سرور خوتش زما دَسترګونم کښې وځی

دازۀ به خنګ دَ تکبُر یاره خبرې وکړم
زما خو هر یوساه ستاپه قدم کښې وځی



داستاوصال خوپه مثال سم په هندو سلام دے
کالونه پس وې اوهغه هم په ځم ځم کښې وځی

وئیلې حسان ووچې دَ درد فریاد به نکړم چاته
دَ زړۀ غمونه بس زمانه به قلم کښې وځی



## (څلوريزه)

چې خودي له خوده وځي نو مستي شي
چې ځواني له زوره وځي بې وسي شي

دومره لرې تبه دۀ ځان په ذات کښې لاړې
په خدائې که درته ياده دې ماضي شي

★★



## (څلوريزې)

لږ دۀ اوښکو دباران خبرې ښې دی
څه دۀ زلفو دجانان خبرې ښې دی

دَ وحشت په تور ځنګل اوتوره شپه کښې
کله کله دَانسان خبری ښې دی

★★



وخت زورور دے لږ به زور غواړی
هم خاموشی او هم به شورغواړی
وس به لاړشم ستادَ مخه دَ وطنه
خوزړګے مې ستا کوڅه کلے کور غواړی

★★

زړۀ مې پښتون ننګ مې پښتون جانان پښتون دے
عشق پښتون زړۀ کښې ساتم ارمان پښتون دے
طرزونه ټول دې پښتانه کړه اے پښتون جانانه
په دې خاؤره خيال ساته جهان پښتون دے

★★





چې اوښکې راپريوځی نوپه مخ باندې شبنم شه
دايو قميص لږمه يه ارمانه ګورے سم شه

دَ لرې اشارې به کړې فساد جانانه جوړ
دَيوبل ګاونډيان به شوراځه زمونږ په چم شه

★★



خوب خندا مې شوله ورکه ستاله غمه
لکه ساه چې رانه وتې یاره سمه

تعجب دے چې دَیار مخکښې خندیږم شم
ګنې سترګې مې پریوځې لا دَ نمه







څو مره چې په زړهٔ کښې مې ګیلې وې آخراوښکې شوې
بے دیار چې تیرې کومې شپې وې آخر اوښکې شوې

دلته هر بنده دَخپل ارمان جنازې ښخې کړې
هرزړهٔ کښې راپورته وسوسې وې آخر اوښکې شوې

دغه یومنګے وووس اوبیاکښې آخرمات شولو
هرڅوکه وړې سلګۍ اوړدې وې آخراوښکې شوې

نم زما دَسترګو چې ولید فرهاد چغې کړې
وئې راشئ کنه دهٔ څه هم وعدې وې آخراوښکې شوې

ډیر صبر مې وکړو خو حسا نه ورته تېنګ نه شوم
څو مره هم زما چې حوصلې وې آخر اوښکې شو





د غمـونـو پـه باران کښې دَفراق پـه طـوفـانـونـو
خپـل ګـريـوان تـه هـم ساز نشم ليونے کړم ستايادونو

دا ګـريـوان چـې مـې شـليـدلے تـرلمنې درته ښکارې
بے وسـې دَمـحبـت دا تـرجـمـان دے دَ غـمـونـو

مـادَ ژونـد پـه هـر اړخ کښې اميدونـه ئې پيللې
کـله ښارچې څوک ښائسته کړې دګلاب په سُروګلونو

زهٔ بـه ډيـرپـرې نـازيـدمـه يار زمـا دَ زړګـى سَروو
خـونـن ئـې اوښـکـې تـوئيـولـې دَبـل چاپـه رواجونو

مـخـکښـې زهٔ بـه چـې مدهوش ووم ستـاپـه يادوو
وس چـې ځـان نشـه کـوومـه پـه يـوجام نه په جامونو



داچې نـاساپه ليوال شم خپـل ګـريوان ته هم سازنشم
زهٔ عـادت ووم پـه سپـرلـى کښـې ليـونـے کړم خزانونو

داګـريـوان خـوبـه راټول نـن پـه هُنر کړمـه حسـاً نـه
څـو څـه وکـړمـه څـه وکـړم دَدې زړهٔ پـرهـرونـو







# آزاد نظم

## مزدور ابن مزدور

زۀ دلته هم مزدوریم
زۀ به هلته هم مزدوریم
ستا دۀ خان په لاسو خرخ یم
ګوره ځومره زه مجبوریم
ستاوعدې اوږدی اوږدی دی
زما ساه دا لنډه لنډه
ډیره ګرانه به شې خدایه
بے پاپو تاپله منډه
ستانه زار ستانه قربان شم
ستا وعدو کښې هیڅ شک نشته



ستاالفت مالره بس دے
خود خیتې پکښې څه شته
دا آواز زما په خوږوکښې
ګړنګېګی لکه کړېکه
دا ډوډۍ ډوډۍ چې آورم
دۀ زړګې مې وڅی سرېکه
زۀ هم زړۀ لرم خدایه
څه آرزو پکښې ضرور شته
چې راکو ودې عبس نه دے
چرته ښاده د مزدور شته
د زړۀ تل کښې چې پرتې دی
یوه ورځ به بغاوت شی
دظالم ګریوان به وشلئ
زما لوږه به حرکت شی
اے خاونده کرډګاره
اے واکمنه غریب یاره
دَ دُوستئ نه دې قربان شم

تیروؤم هرورځ نهاره
یوغټې کانړے مې په زړهٔ دے
یم په طمه ستادَ حورو
هسې نه خان دجنت نه
راته وائی شابه بهرو
زهٔ دلته تابعداریم
زهٔ به هلته ئې خدمت کړم
په سوونو کاله مخکښې
څم جنته جوړبه ئې تخت کړم
ولې؟
زهٔ مزدور
ځوې د مزدور
ځوې د مزدور
ځوې د مزدوریم
تسلسل ماتوئے نشم
ګرانه خدایه زه مجبوریم

★★





دغـه مـې د خـلـې نـه خووتلې ګڼې وړې دی
څکه مې په مخ اوښکې بهیدلې ګڼې وړې دی

هســې خـاطـر نـه درنـووم نـازاوادا پیـژنـم
تـا پـه خپـلـه خوله راتـه وئیلې ګڼې وړې دی

هسې کهٔ بوډا یم خوپښتو کښې ښه ځوانی لرم
څکـه پـه پښتـو کښې مې تللې ګڼې وړې دی

لـړه خـو مـې پـریـږده غـرڅـنیـه لیـونیـه
زلـفـې دې زمـا تـولې نیـولـې ګڼې وړې دی

چـې حـال مـې داسې نـه وې نـور بـه څـه وی
یـارچې مـې په سترګو کښې ساتلې ګڼی وړې دی

مړېه شم په دومره بې وسۍ کښې خواله مه راځه
توتې چې لوپټې ته دې ګنډلې ګډې وډې دي

نن ساقي غصه دے ميخانه ئے څکه بنده کړه
دلته هر سړی پيالۍ شپندلې ګډې وډې دي

څوک چې پۀ شعر نه رسي جاهله داسې کاندي
چې دائې له خدائيګو څه ليکلي ګډې وډې دي

کاراوس دَ جرګو نه دے دَکلي خان ته ووايه
دا دليوني حسانؔ اوس خپلې ګډې وډې دي

★★





څو مره ژړا ده څو مره اوښکې دي ازل کښې زما
مقصد هم ورک لاره هم ورکه ده مزل کښې زما

نورې ګيلې به زۀ د چانه اوبيا ولې کووم
بس چې نامه ليکې شوې ده اجل کښې زما

چې صفتونه ئې دَکلي هريوښکلے کوي
دغه خوا بۀ د يار ده سترګو دې کجل کښې زما

وائيم حسانؔ ګوته په خوٴله به ورته پاتې شې تۀ
دومره درد ونه ګورے شته ياره غزل کښې زما

★★

## ......(هائیکو)......

دَ کلی وځه خودَ نرخه مه ځه
دامشران زماخبره کوی
ځکه دَیاد ګیدړے په سرګرځوؤم

★★

ستادَ غمونو بارانو نه مُدام
په ماوریږی پکښې ژوند تیرووم
دې احسانونو خوغلام کړمه ستا

★★





چې د زړۀ خونه ورانۍ ساده حسانه
اور دې پورې شی په داقسمه کتو

چې حالاتو زلمے کړے ئې ځوان هغه دے
چې ژوندون ئې هر لحظه ئې دَ اسوېلو

زۀ ئې دَ ذات دخکلولو مُبرا یم
یار تهمت هسې لګۍ په لیونو

چاپیری اومُریدی ده ورته پریښې
دا تاثیر زمادَ یار دے په لیدو

په دې شکر دَ چاغم چې مې په سردے
هر یو یاد ئې دے سکون دَ شوګیرو





زما د ژوند زما د هريو ګُل ارمان قاتل
زما د ټولو احساساتو دے جانان قاتل

سترګی به بندې کړمه پټ به ستاپه کلی تيرشم
خودا به وائم چې نن څه شودګريوان قاتل

دومره مې يادکړو چې يے خوده شوم راپريوتمه
ګوره عالمه نن مې ځان کړو دخفګان قاتل

بے وس پښتون يم دامنمه خو بُزدله نه يم
تپوس به کړم که قاتل يودے که جهان قاتل

ټول احساسات مې لړزيدلی داپُوښتنه کوې
ټهيک ده زمونږه قاتل حسّان خود حسان قاتل؟







غربت چې ديکې راکړلې نوخودمې سرله راغے
ارمان اېله بينا شو چې لړ زور نظرنه راغے

هله به ئې ښار ته زۀ ورځمه دامې ضد دے
جانان که مې دې خړ کلی او خړ خبر له راغے

وينه مې ورکړی غوښې يادکښې دوړيدلی
ياالله‌ی خبر کړې چې بيا ځله درله راغے

بس ئې کړه نور پريږده دا ياد ونه شوګيری ئې
چې دا تصور څنګه مې پښتون ځېګر له راغے

هله به مجنون شم چې دَ هجر تياري تت شی
خفګان چې مې بياکله دۀ ارمان سحرله راغے

داسَر مې پرې کيدے شي تيتېدے نشي انسان ته
دا څنګه بندګي ده چې نسبت بشرله راغے

حسّان څۀ بزرګ نه يم خو فکرونو کړم خاموشه
چې هجر مې بيا څنګ د تماشې ځيګرله راغے

★★



★

ستا کرم په ما ډيرغټ دليونتوب دے
د سرور اوخودۍ ډک چې زلميتوب دے

سور دوزخ مې مسکن نه دے زما ربّه
ګناه کوم خوليونتوب څه ميئنتوب دے

بس دے راشه لږ مې خواله ليونيه
درپسې مې دې ګوګل کړے پړسوب دے

اے ګرانه کردګاره يو دوه ورځې زندګي را
کوم ژوند چې مې تير کړے لکه ماليدلے خوب دے

چې دوه مئينان خپلو کښې حسّا نه روغوي څوک
هم دغه يوسړی کښې بس خدائيګو سړی توب دے

★★



چې دَ مرهم په ځائے لګئ په پرهر چک
ربّ دې ورک کړې له جهانه داسې سپک

داچې ماپه میووینی اوګډا کوم
نن راغلے دے له ډیرو مودو ورک

داد یار له غمه واړه بے خودی دی
داچې ځم داسې مدهوشه خورم تپندک

دَپښتون کورکښې نن بِله ماجره ده
پلار پسې چې ځوی راختے دے کوتک

مونږه ځانله دَخپل ذات په ګناه ژاړو
تهٔ وے ووهه دَخلجی بچیه ثک







چادَوصال چادَ هجرانه توبه اویستله
مونږه خونن نه دَ جانانه توبه اویستله

هغهٔ خو ځانله بندګئ کښې سجدې غوښتلې
دَ داسې خانه مې نن خانه توبه اویستله

مجنون به څهٔ وو قیس به څهٔ وو داپښتنه کووم
په محبت کښې مې له ځانه توبه اویستله

خورمه قسم چې یار کوڅې ته به دې نهٔ درځمه
څومره په ګرانه مې آسانه توبه اویستله

چې لړزیدلی درزیدلی احساسونه نه وی
له داسې مینی مې حسانه توبه اویسته





محبت کښې محبت باندې تاوان شوم
نه جانان مې کړلو خپل اونه ده ځان شوم

ځان مې ورک کړلوله خپل ځان اوترشوم
څه په ورکولارو لاړم بے کاروان شوم

دۀ ځوانۍ زور وو د زوره خبر نه ووم
نودا نا شومه چې خلاص زۀ د ګریوان شوم

چې سپېځلے محبت مې زړۀ ته راغے
هله پوهه په خوبوزۀ دايمان شوم







مینه کوم خود کولو زورمې نشته
دومره کوم چې د تللو زورمې نشته

بغاوت په خپل وجود کښې مې شروع دے
نور د چادَغم زغملو زور مې نشته

ديارغم داسې ليوال کړمه بے دمه
خندا څه کړې دَژړلو زور مې نشته

پېغورونه مې قبول دي په سرسترګو
دګريوان هم دګنډلو زور مې نشته

دَحسان دَمرګ استاذی ته يې ووې
بيا به ګورو دَليدلو زورمې نشته





لیونے مست شوستا دَ زلفو تور ماښام غواړې
خوبونه لړدې په مړوندا وډیردې پام غواړې

ساقی چې ستا بے خودی ولیده توبی ئې ویستې
چې هر یو لفظ باندې جانان او میو جام غواړې

دادَ بېلتون تیارې دې تت که لږ وصال راکړه
لا به ترڅو مو محبت داسې ناکام غواړې

نورد قسمت دَناکړدو به درته څۀ وائیمه
هر یو ارمان مې دَارمانه انتقام غواړې

مونږه شډل بډل دَکلی دَمیرو خلق یو
زمونږ نه پاتې دی که ښکلی احترام غواړې







کډې په سردې چرته لاړلو حسان دَکلی
کانړی راولیٔ روغ ئې یوړلو ګریوان دَکلی

څنګ شمه غلے هغه ورځ له مانه نۀ هیرېږی
څه په دیکو چې راوښکلے وومه خان دَکلی

دَبابا کلی یې بهر کړمه په پاکه مینه
نفرت مې وشوله هغې دهرانسان دَکلی

زمانه پس تهول پیغورونه به یار زغمی
دخود غرضه ښاره ښه وی لږ یاران دَکلی

خپلې وړې سلګۍ کړم هېرې ښار کښې وخاندم ستا
ناصحه خوار شې یم راغلے په خفګان دَکلی



اوس هغه مينه او خلوص وفا ئې پاتې نۀ شوه
ځکه څادر مې خپل څنډم ځم دَجانان دَکلي

دَيار په کلي چې د کلي مقبرې ته مې وړي
په مرګ هم ګران دے مُلاجانه داګزران دَکلي

دۀ ځنکدن وخت کښې ئې دومره اِشارو کښې اوئيل
حسانؔ لاړم له جهانه په ارمان دَکلي

★★





زه په خزان کښې دَ بهار تپې کولے نشم
څنګه په دار چې زۀ ديار تپې کولے نشم

دالاس مروړل به مقدر کښې وو يارانو زما
بس په هجران کښې د اظهار تپې کولے نشم

څه د احساس ترجُمانی ژبې غلطه وکړه
بل سُور لاتاړ کښې ده انکار تپې کولے نشم

دلته بُلبل خو دَچغار اود مستئ نه وتے
په دې ماتم کښې ده ګلزار تپې کولے نشم

د چا يادونه راسره دی بس په دې خبره
ځکه مې ځان ته د آزار تپې کولے نشم

چې دَ زړګې مې درزیدل اوښکی بهیدل مې نه وی
په تش مزار زه دَ مزار تپې کولے نشم

بے وسو داسې خاموش کړے یم حسّانه یاره
زړۀ کښې ساتم خودَ ګفتار تپې کولے نشم

★★



★

سترګو کښې نن یارمې څه ساتلی دی
داسې چې کاتۀ یې غلی غلی دی

یاره ستا احترام اوس هم لیونے کوم
ډیرڅه مې پټ کړی لږ وئیلی دی

بیا مې هم او باسی د دې کلی نه
ډیر سپین ګېری یارله مې ورغلی دی

ستا مینې خو ډیر زه مخ تورن کړمه
لاړې دَارمان دَحولې اوس تلی دی

زه د خپل وطن بچي بچي ژاړم
ځکه خو مې دارنګه زړلی دی

په اوښکو ئې ليکلی په دردونو راوتلې دې
ځکه د حسان ياره خوا بږې خوا بږې غزلې دې









دۀ منصور غوندې به ورکه زۀ يو سوال کوم
څه رنګين غوندې يارانو زۀ کمال کوم

تا چې خوند ديار د نرمې غېږې اغستے
خود به وائې چې وس زر زر ئې وصال کوم

دے په کال کښې صرف يو ورځ دُرومی حج له
زۀ خو کالوسر طواف ده يو هلال کوم

ته هر وخت په تغيُّر کښې ياره ورک ئې
زۀ ګنډل د خپل ګريوان په هر يو حال کوم

ته بنده دۀ کانړو بوتونو ئې کافره
بندګئ د بنده نۀ دَ ذوالجلال کوم

که مې سَر د نفرت کلی کښې خېر لاړشی
زۀ حسان دَ محبت تخم به نال کوم

